**تعريف:**

د کمونیسم ( کمونیزم ) اصطلاح د لاتیني کلمې (Communism) څخه اخیستل شوې چې معنی یې مشترک والی او اشتراکیت دی.

په اصطلاح کې هغې فکري، سیاسي، علمي او اقتصادي خوځښت او نظریې ته ویل کیږي چې په نولسمه میلادی پیړۍ کې د کارل مارکس د نظریو په اساس، د انګلس ( انګلز )، هیګل او داروین د نظریاتو په ملاتړ، را منځ ته شوې او په روسیه کې عملا د لینن په واسطه تطبیق شو.
کارل مارکس خپلې نظریې ته د کارګرو د غورځنګ نوم ورکړ، او په دې عقیده ؤ چې دا یوه ایډیولوژي نه ده، بلکه دا یو عمومي اوښتون دی چې د کارګرو د طبقو واک ته رسول به یې موخه وي.

**کارل مارکس څوک ؤ او ولې یې دا نظریه رامنځ ته کړه؟**

کارل مارکس په ختنه یهودي ؤ چې په ۱۸۱۸ میلادي کال په آلمان کې تولد شو او په ۱۸۸۳ کال په انګلستان کي مړ شو، نوموړي خپل کمونستي نظریات په ۱۸۴۷ کال ښکاره او د یوه فکر او ایدیولوژی په بڼه یې ټولنې ته وړاندې کړل.

**څه لامل ؤ تر څو کمونیستي فلسفه رامنځ ته کړي؟**

دې کار ته ډیره د نوموړي تر شخصي ژوند پورې تړاو درلود، مارکس په خپل ژوند کې د امپریالیزم یا سرمایه دارۍ نظام د واکمنو (سرمایه داران) له لاسه ډیرې ستونزې ولیدې، هغه د یوه سرمایه دارې کورنۍ له یوې نجلۍ سره کوژده وکړه، کله چې هغوی پوه شول چې مارکس له غریبې کورنۍ څخه دی، نو دا واده یې فسخ کړ.



همدا شان نوموړي د شمشير زني په يوه سيالی کې د يوه سرمايه دار څخه ماته وخوړه او تندی يې ټپی شو، د تندي دې ټپ يې په زړه داغ جوړ کړ او عقده يې ورسره زياته شوه، له بل لوري، کارل مارکس په يوې بې وزلې کورنۍ کي لوی شو چې ډيرې ستونزې يې له سرمايه دارانو وليدې، د لويديځ سرمايه دارۍ نظام چې هر څه به د خان، او سرمايه دار په لاس کې ؤ له پيړيو پيړيو همدې خانانو په خوارانو او مزدورانو حکومت درلود، خوار او کارګر د پيړيو را پدې خوا محکوم او مظلوم ؤ، د خپل واک او حق څخه محروم ؤ، دې حالت هم په مارکس منفې اغيزه وکړه تر څو د کمونيزم مفکوره رامنځته کړي، همدا شان د اروپايي کليسا کړنې هم د دين او مذهب څخه د مارکس د تيښتې لامل شوې، د هغې زمانې کليسا چې د قيصر او پاچا په خدمت کې وه، خلکو ته يې دا تلقين کاوه چې دا قياصره د خدای له لوري د خلکو نمايندګان دي، دوی چې هر څه کوي او هر څه وايي بايد په پټو سترګو ومنل شي، د کليسا پاپ، او د سلطنت تخت د عوامو او غريبو په خلاف لاس سره يو کړی ؤ، هر څه يې چې زړه غوښتل هغه يې د قانون په توګه په خلکو منل، ځکه کليسا هم داسې کوم ديني قانون نه درلود چې د الله تعالی له لوری نازل شوی وي، بس د دوی د ګيډې قوانين د الله قوانيين بلل کيدل او په خلکو د تورې او متروکي په زور منل کيدل .. همدا لاملونه ؤ چې مارکس او ورسره وروسته ملګري يې انګلس ( انګلز )، هيګل .. داسې يو نظام ته وهڅول چې د سرمايه دارۍ، او دين په سر يې پريکنده ګزار وکړ نو موږ ويلای شو چې د مارکس نظريه د امپرياليزم په وړاندې يو تغيري عکس العمل ؤ.

**ددې غورځنګ موخې:**

سره ددې چې د کارل مارکس نظريات په تاريخ، فرهنګ، ټولنپوهنه، فلسفه، اقتصاد کې ډير پراخه بحثونه راپارولي او ځينې خو داسې کليات دي چې خپله کمونستان يې هم په تفسير کې سره ويشلي او هره ډله



ترې خپل تعبير لري، خو کوم چې په نړۍ کې د کمونيزم د نظامونو اساسي بنسټونه جوړ شول، او وروسته عملا کمونيستي نظامونو عمل پرې وکړ مونږ به په هغو رڼا واچوو:

**لومړی اصل- د خصوصي ملکيتونو له منځه وړل:** د مارکس د نظرياتو له مخې ثروت او مال د ټولو خلکو مشترک مال دی، هيڅوک به شخصي ملکيت ونلري، له همدې امله ددې غورځنګ اساسي موخه او هدف د خصوصي ملکيتونو له منځه وړل، له سرمايه دارانو د مال او جايدادونو ضبط کول او عملا د حکومت تر واک لاندې راوستل ؤ، او د کارګري انقلاب په واسطه د ټولو ټولنيزو طبقو مساوات ؤ، هغوی غوښتل ټولې ټولنيزې طبقې له منځه ويسي او ددوی په آند ټول خلک سره مساوي او برابر کړي چې عملا په پخواني شوروي اتحاد او چين کې يې ټول ملکيتونه ضبط او د خلکوترمنځ وويشل، ټولې طبقې يې له منځه يوړې، البته دا د مارکس تصور او تفکر ؤ چې د هغه په ژوند کې تطبيق نه شو.
د مارکس په آند کله چې يوه ټولنه د سرمايه دارۍ نظام څخه کمونيزم ته را اوړي، دا کار يوې اوږدې پروسې ته اړتيا لري او دې پروسې ته يې د پرولتاريا د دکتاتورۍ او يا د کارګرو انقلاب وايه.

سره ددې چې له مارکس وروسته دا نظريه په پخوانی شوروي اتحاد، چين، کيوبا او ځينو نورو هيوادونو کي د کودتاګانو، عسکري انقلابونو او يا چريکي جګړو په ترڅ کې تطبيق شوه، خو دوی هيڅکله هغه موخه چي مارکس درلوده عملی نه کړه، بلکه له ديکتاتورۍ څخه يې هغه دکتاتوري عملی کړه چي د مطلق ازادۍ حق يې هم له خلکو واخيست، او داسې استخباراتي شبکه يي رامنځ ته کړه چې د انسانانو خولې، او عقلونه يې هم وروتړل، چې د ستاليني دوران (۱۰) ميليونه انسانانو وژنه او په چين کې د مائؤ د څو ميليونه انسانانو وژل يې ښه بيلګه ده ترڅو چې د ستالين له قوله حکايت شوی او هغه وايی (د نړی د نفوسو دوه په درې برخه خلک



د همدې نظريې لپاره له منځه ولاړ شي هم پروا يې نشته). دا نظريه چې په لومړۍ سر کې ځومره د کارګرو د انقلاب او کارګرو د واکمنۍ په نوم رامنځ ته شوه په عمل کي کارګر يوازې د يوې خدمتګارې وسيلې په توګه چې پرته له کار څخه يې هيڅ ارزښت نه درلود و کارول شو، نه کوم کارګر واک ته پکښې ورسيد او نه هم د هغوی نظر اوريدل کيده او هر څه د کمونستي ملګرو په لاس کې ؤ.

**دوهم اصل - د اجورې يا مزد له منځه تلل**: ددې ايديولوژي دوهم تصور د کارګرۍ اجورې يا مزد له منځه تلل ؤ، د دوی په اند، د کمونستي ټولنې خلک او کارګر چې ځومره توان لري بايد هغومره کار وکړي، او د هغه د کار په اندازه بايد په لومړي قدم کې اجوره ورکول شي، او په دوهمه مرحله کي بايد هر څوک د توان په اندازه کار وکړي او د ضرورت په اندازه مزد واخلي، خو دا تصور هم په عملي کمونيستي نظامونو کې د کارګرو د مطلق بردګۍ او د د دوی د ټنبلۍ او کسالت باعث شو، ځکه کله چې يو چاته ددوی د کار په اندازه معاش ورنکړل شي، نو د کسالت خواته ميلان پيدا کوي، عملا په کمونيستي نظامونو کي کاريګر د کمونستو واکمنو له لوري تر شکنجو لاندې ؤ، او دوی به د کار په جبري کمپونو کې مړه کيدل.

**دريم اصل - ماترياليزم او ديالکتيک:** د کارل مارکس په فلسفه کې د منطقي ماديت او د ديالکتيک نظريې را منځ ته شوي دا نظريې د هيګل او انګلس له نظريو سره يو ځای شوې او د کمونيزم اساس يې کيښود ددې نظريو په اساس، هر څه په دنيا کې ماده ده او له مادې څخه سرچينه اخلي اوپرته له مادې بل څه نشته، اودوهم دا چې هر څه په تغير او تحول کې دي، په نړۍ کې هيڅ شی ثابت نشته، تل ماده تحول او تغير کوي. دا نظريه انسان له خدای او آخرت څخه انکار ته هڅوي او دوی هم په زغرده د خدی له وجود څخه انکار وکړ، دا چې د دوی په عقيده هيڅ شی ثابت نشته او هر څه تغير کيدونکي دي، نو د دوی په اند کومه ثابته عقيده او تصور نشته، او هر څه مادي بڼه لري، ټول موجودات او شته شيان ماده



ده، او ماده تغير کوي او ماده هغه شی دی چې په پنځو حواسو محسوس کيدای شي، مارکس وايی نعوذ بالله ( خدای نشته او ژوند يوه ماده ده ) بل ځای وايي : (دين د ملتونو مخدر دی.)

د همدې نظريی په اساس لينن په (۱۹۱۳) کال په خپل بيان کي ووېل : دا سمه نده چې نړی د خدای له خوا رامنځ ته شوې، بلکه سمه داده چې د خدای د وجود عقيده يوه خرافی عقيده ده چې خپله انسان رامنځ ته کړې، له همدي امله هر څوک چې د خدای د فکر څخه دفاع کوي هغه يو جاهل انسان دی.

همدا شان لينن په (۱۹۳۰) کال د ځوانانو غونډې ته ووېل : لازمه ده چې زموږ ځوانان په کمونستي اخلاقو سنبال شي، او دا هم بايد واوري چې دا اخلاق له کومو الهې سرچينو ندي ترلاسه شوي ځکه موږ په خدای باور نه لرو.

د پرودا ورځپاڼې په (۱۹۵۴) کال وليکل : د خدای د وجود تصور يو پخوانی جاهلي تصور دی. دا او داسي نور ډير دلاېل شته چې دا په ګوته کوي چې د کمونيزم مفکوره يوه الحادي او په خدای تعالی د نه باور مفکوره ده.

سره ددې چې نوی کمونستان د مارکس دا خبرې په ملايمو ټکو توجه کوي او هڅه کوي چې په نورو بڼو کې تفسير کړي، خو عملا په کمونستي هيوادونو کې همدې ګوندونو د مذهب او دين په خلاف هغه جنايات تر سره کړل چې انساني وجدان يې د اوريدو ندی.

له همدي امله کله چې په شوروي اتحاد او چين کې کمونستي انقلابونه را منځ ته شول، د سرمايه دارانو څخه وروسته يې دوهم يرغل په دين اوديني مراکزو ؤ، دوی د منځنۍ اسيا، شرقی ترکستان، او غربي ترکستان ټول جوماتونه او په روسيه کې ټولي کليساګانې وترلې، مذهبي کتابونو



ته یې اور واچاوه او دیني مراسم یې ممنوع اعلان کړل، د دین په جرم یې میلیونونه انسانان ژوندی تر خاورو لاندې کړل، چې د ستالین په روسیه کي، ماؤؤ په چین کي د وژنو داستانونه تاریخ نشي هیرولای.

**څلورم اصل - د ثابتو اخلاقو نه شتون:** کمونیزم هیڅ نوع ثابتو اخلاقو ته ژمن ندی، دوی ته اخلاق د اقتصاد برخه ده، کله چې په کوم کار کې اقتصادي او یا حزبي ګټه وي هغه اخلاق دي او کله چې تاوان وي، همغه شي بیا بیرته عدم اخلاق کیږي.

**پنځم اصل-د کمونیزم سیاست په یو حزبي سیستم :** په کمونستي ټولنو کې یوازې یوه ګوند د حکومت کولو اجازه او فعالیت درلوده چې هغه عبارت له کمونست ګوند څخه ؤ، سره ددې چې مارکس خو دې ته د کارګرانو پرولتاریا وویله خو عملا، نه پرولتاریا وه او نه هم کارګر هلته دا توان درلود چې حکومت وکړي بلکه هر څه د کمونست ګوند په واک کې ؤ.

ددوی په آند تر ټولو عالي او پیاوړی انسان هغه دی چې کمونست ګوند ته وفادار او د کمونیزم لپاره ښه کار او خدمت وکړي، مال او سرمایه هلته د افتخار وسیله نه وه، نو له همدې امله کمونستانو به د مال پیدا کولو په ځای ګوند ته په خدمت کولو ترجیح ورکوله تر څو یې اعتبار زیاد او په واک کې لوړ پوړ ته ورسیږي. د دوی په تر واک لاندې نظامونو کې دوهم ګوند، ډله حزب او هیڅ مذهب په هغې ټولنې کې د فعالیت اجازه نه درلوده.

**پنځم اصل - د ډاروین نظریه:** د کمونستانو ځینې ډلې د انسان د پیدایښت او تطور په برخه کي د داروین د نظریی ملاتړ کړی، دوی ته د داروین هغه نظریه هم د منلو ده چې ګواکې انسان د بیزو د نسل یو پرمختللی او تطوري نسل دی.



**د کمونستي نظامونو اختلافات:**

سره ددې چې کمونستان ځانونه د مارکس د نظریاتو پابند بولي او عملا هغه ته د خپل (پیغمبر) په سترګه ګوري، خو د هغه د تصوراتو په تفسیر او د عملي تطبیقي نظریاتو په پایله کې په دوو لویو او بیا په څو شاخونو سره ویشل شوي. چې یوه ډله یې ځان لینیني کمونستان بولي چې د ځینو نورو کمونستانو لکه ساتلیني او خروسچوفی تروتسکي کمونستان هم ورته وایی چې مرکز یې عملا پخوانی شوروي ؤ.

دوهمه لویه ډله د مائوایستي کمونستانو ډله ده چې مرکز یې په چین کې دی، دریمه ډله بیا په البانیا کې د انورخواجه په نوم د کمونستانو ګروپ دی چې د جنوبی امریکا کمونستان یې ملاتړ کوي.

د همدې اختلافاتو په نتیجه کې د چین او روسیې لښکرې څو ځله یو د بل په وړاندې سره مخاخ شوې او په ویتنام کې خو په ښکاره سره وجنګیدې، له همدې امله ډیر وخت به روسي کمونستانو د چیني کمونستانو په وړاندې مرګونی دریځ نیوه او برعکس چیني کمونستانو به د روسانو په وړاندې د همداسې دریځ څخه برخمن ؤ.

زموږ په هیواد کې هم د دواړو کمونستي بلاکونو پیروانو فعالیت درلود او اوس هم په مختلفو ګروپونو کې فعالیت لري چې په دوهمه برخه کې به په دې هکله دا موضوع وڅیړو:

**د کمونیزم اوسنی حالت:**

د افغانستان په جګړه کې د پخواني شوروي اتحاد د ښکیل کیدو او دلته له ماتي وروسته پخوانی شوروي اتحاد له منځه ولاړ او دا امپراتوري ټوټې شوه، ورسره په شوروي بلاک کې چې د ختیځې اروپا هیوادونه هم پکښې ؤ کمونیستي مفکوره د یوې حاکمې مفکورې په اساس له منځه ولاړه، هلته د لینن مجسمه نسکوره او عملا دا هیواد په کاپټلیزم کې شامل شو،



په چین کې هم کمونستي شدید شرائط کمزوري شوي او دا هیواد د کمونیزم او کپیتلیزم ترمنځ په یوه دوه لارې ولاړ دی.
نو کمونیستي ډلې د پخوا په شان ډیرې کمزورې شویدي، خو بیا هم په ډیرو هیوادونو کې فعالیت لري، هماغه لینیني او مارکسستي مفکوره تعقیبوي او د بیا رامنځته کولو هڅې کوي.

## په افغانستان کې د کمونستي جریانونو لنډ تاریخي سیر:

لکه مخکې مو چې وویل کمونستي تصور د مارکس د نظریاتو په اساس رامنځ ته شو او د کمونیزم په نوم یې یوه مفکوره وړاندې کړه او په دې لاندې اصولو ولاړ دی:

١-د خصوصي ملکیتونو له منځه وړل
٢-د مزد او اجورې ټاکلې اندازه له منځه وړل
٣-د ماتریالیزم او دیالکتیکي نظریاتو په اساس یواځې ماده منل، او له ثابتو عقایدو انکار
۴ -د کارګرانو دکتاتوري او یوګوندیز نظام
۵ -د دارویني نظریاتو په اساس انساني نسل د بیزو له نسل څخه منل
اوس به په دې بحث وکړو چې افغانستان کې کمونستي جریانونه او ډلې له کومه وخته راپیل شویدي اوسنی حالت یې څه دول دی:

افغانستان کې هم د نورو هیوادونوغوندي د ۱۳۲۰-۱۳۳۰ کلونو ترمنځ د کمونست ګوند نظریې خپرې شوې، دا نظریات په پټه او یواځې د نظریو په سطحه په پوهنتوني او اکاډیمیکو مراکزو کي مطرح ؤ، ځینې کسانو چې له کمونیستي هیوادونو سره یې تړاو درلود، یا یې هلته زده کړې ا لوړ تحصیلات کړي ؤ عملا یې دی نظریې ته کار کاوه، کتابونه او لیکنې به یې سره تبادله کولې او دعوت یې کاوه.



بلاخره شوروي پلوه کمونستي ډلې په (۱۳۴۳) کال د جدي په (۱۱) نیټه (حزب دیموکراتیک خلق افغانستان) د نور محمد ترکي په کور کې د هغه په مشرۍ تأسیس کړ . په دې ډله کې نورمحمد ترکی، ببرک کارمل، حفیظ الله امین، طاهر بدخشي، میرغلام محمد غبار، او داسې نور شامل ؤ چې غبار له همدې وخت څخه ورڅخه جلا شو . د عبدالکریم میثاق په خبره، حزب د تشکیل په مهال په ښکاره د کمونستي افکارو له بیانولو ډډه کوله، خو د غړو تر منځ دا نظریه واکمنه، او عملا ددوی تر منځ همغه کمونستي اصطلاحات او افکار تبادله کیدل.

**د خلق او پرچم د ډلو رامنځ ته کیدل:**

د حزب له تشکیل څه وخت لا نه ؤ تیر شوی چې د غړو ترمنځ د واک، ژبې او تصوراتو په اساس اختلافات راپورته شول، اوحزب د خلق او پرچم په برخو وویشل شو

**۱-خلق :**

لومړی ډله د خلق په نوم د نورمحمد ترکي تر مشرۍ لاندې چې د حفیظ الله امین په ګډون زیاتره کلیوال او پښتانه ورسره ؤ رامنځ ته شوه چې د انقلاب تر آخره په همدې نوم مشهور وه.

**۲ -پرچم :**

دوهمه ډله د پرچم تر نوم لاندې د ببرک کارمل په مشرۍ چې زیاتره ښاري او فارسي ژبی پکښې راټول ؤ په کار پیل وکړ.

**۳-د طاهر بدخشي ستم ملي ډله:**

دریمه ډله بیا په ۱۳۴۷ کال د طاهر بدخشي په مشرۍ له ګونده د نشنلستي تصوراتو په اساس د پښتنو سره د سخت مخالفت له امله بیله شوه چې



(سازمان انقلابی زحمتکشان افغانستان ) (سازا) يې تأ سيس کړ،او په نورو کمونستانو کې په (ستم ملي) مشهوره شوه . دا ډله هم د کمونستي افکارو په اساس داسې تشکيل شوه چې غوښتل يې د پښتنو له واک او سلطې پرته افغانستان کې نوی نظام ولري ددې ډلې غړي زياتره له تاجکو سيمو او تاجکان ؤ چې له بدخشان تر پنجشير او قطغن پورې يې ملګري درلودل. دا ډله هم بيا په دوو برخو وويشل شوه چې يوه ډله د طاهر بدخشي په مشرۍ د "سازمان زحمتکشان افغانستان" په نوم اوبله ډله د باعث بدخشي په نوم په "سازمان فدايی زحمت کشان افغانستان" په نوم رامنځ ته شوې.

طاهر بدخشي لومړی د سردار داؤد خان په حکومت کي د نظام سره د مخالفت په اساس بندي شو، خو کله چې په (۱۳۵۷) کال کمونستي کودتا رامنخ ته شو له بنده خوشې شو، نومړی يو څه وخت آزاد ؤ وروسته د خلقيانو له خوا، نظام ته د توطيي په تور ونيول شو او په زندان کي اعدام شو . ددې ډلي پيروان د مجاهدينو تر يرغل لاندې راغلل چې ځينې يې د صمد پاچا د مليشو غونډې د کمونستي حکومت سره يو ځای او ځينو په ډير مهارت ځانونه د جمعيت ګوند ته ورداخل کړل . چې په دې ګوند کې د پښتون ضد احساساتو لامل شول او تر اوسه هم پکښې فعال دي

**د خلق او پرچم د ډلو فعاليتونه:**

د ديموکراسۍ د لسيزي په وروستيو کې دواړو خلق او پرچم ډلو خپلې جريدې درلودې او خپل افکار يې پکښې خپرول تر دې چې په (۱۳۴۹) کال د پرچم جريدې د (لينن) د زوکړې سل کلنه کليزه په ډير شور سره ولمانځله، او هغه يې په داسې کلماتو وستايه چې عملا يې مسلمانان محمد (ﷺ) ته کاروي په دې سره دا جريده د حکومت له لوري اسلام ته د سپکاوي په تور وتړل شوه .

همدا شان کله چې په ۱۳۴۳ کال ببرک کارمل د ملي شورا غړی شو، نو په



لوړ اواز یې په لینن درود ووایه چې د مسلمانو نماینده ګانو له خوا د سخت عکس العمل سره مخ شو
دواړو ګوندونو د اختلاف سره سره په خورا بیړه د ځوانانو په منځ کې ملاتړی پیدا کول او خپل کمونستي مارکسیستي افکار یې خپرول، او هڅې یې پیل کړې چې په فوځ، پولیسو او نورو موسسو کې خپل ملاتړي وومومي، له همدې امله د خلق ډلې له لوري حفیظ الله امین، او د پرچم ډلې له لوري میراکبر خیبر په فوځ کې د نفوذ او تنظیم لپاره وګمارل شول (دا وخت زیاتره فوځې افسران په شوروي اتحاد او نورو کمونستي هیوادونو ته د زده کړو او تحصیل لپاره استول کیدل چې له هغې خوا به په کمونستي نظریه سنبال راتلل) دوی وتوانیدل د سردار داؤد خان د کودتا تر مهاله (۱۳۵۲) کال پورې په نوموړو مؤسسو کې پوره ملاتړي وومومي او د داؤد خان خان سره په کودتا کې پوره همکاري وکړي، د داود خان د کودتا وروسته کمونستان وتوانیدل د حسن شرق او فیض محمد غوندې مهم غړي د حکومت لوړ پوړو څوکیو ته ورسوي، په دې سره دوی په خلاص لاس په فوځ، پولیسو، او نورو دولتی مؤسسو کې د خپلو افرادو په ګمارلو کار پیل وکړ، ورسره یې د اسلامي نهضت د غړو په اړوند چې په هغه مهال په اخوانیانو مشهور ؤ او د کمونستانو سرسخته رقیبه ډله وه غلط تصورات ورکول او هغه یې دې ته وهڅاوه چې د نهضت په غړو ناتار پیل کړي، لسګونه کسان یې زندانونو ته ټیل وهل، ځینې اعدام او نور مجبور شول غرونو ته پورته او جګړه پیل کړی. په دې خدمن کي کمونستانو د داؤد خان سره خپل موقف نور هم پیاوړی کړ.

خو سردار داؤد خان په ( ۱۳۶۵)کال د پرچم ډلې په شراشرتونو پوه شو نو د هغوی د اخراج په موخه لاس په کار شو،په د داؤد خان په دې عمل سره کمونستانو ځانونه په خطر کې ولیدل نو دواړو ډلو (خلق + پرچم) بیا په ۱۳۵۶ کال کي د یوه تړون په اساس اتحاد سره وکړ او سره یو خای شول.



کله چې سر دارمحمد داؤد خان له حکومت څخه د پرچم ډلې غړي شړل نو په ځای به یې لوړ پوړو کمونستانو د خلق ډلې غړي ځای په ځای کول، تر دې چې د همدې کال تر پایه دوی دومره ځواک پیدا کړ چې حفیظ الله امین رسما ترکي ته د کودتا د آمادګۍ خبر ورکړ.

د ۱۳۵۷ کال په لومړیو کې محمد داؤد خان د کمونستانو له شراشرت څخه سخت په تنګ شو نو ددوی د شر څخه د خلاصون په موخه یې د هغوی د مشرانو د نیولو حکم وکړ، په دې لړ کې نورمحمد ترکی او ګڼ نور مشران ونیول شول، خو حفیظ الله امین تر نیول کیدو مخکې په فوځ کې خپلو ملګرو ته د کودتا امر کړی ؤ د ۱۳۵۷ کال د ثور د میاشتې په ( ۷) ورخ چې حکومت باید د کمونستانود مشرانو په اړوند غونډه کړي وای، کمونستو افسرانو ټانګونه را وایستل او کودتا یې پیل کړه، د کودتا په ترڅ کې کمونستان ارګ ته ننوتل سردارد داؤد خان یې د خپلې ټولې کورنۍ ( ماشومانو او ښځو) او د کابیني له اکثریت غړو سره په شهادت ورسول او کودتاچیان بریالي شول چې حکومت تر لاسه کړي نو یې نورمحمد ترکی له بنده خلاص او جمهور ریس کړ.

واک ته له رسیدو سره سم ددوی ترمنځ بیا د قدرت په سر سیالي پیل شوه، د ببرک کارمل او حفیظ الله امین ترمنځ ناندرۍ ناورین ته ورسیدي، تر دې چې شوروي اتحاد مداخله وکړه او ددوی ترمنځ یې د قدرت ویش داسې وکړ چي حکومت به خلقیان کوي او بهرني سفارتونه به د پرچم ډلې په لاس کې وي، په دې کار د پرچم ډله ناراضه شوه او د یوې کودتا هڅه یې وکړه، امین ته موقع برابره شوه، د پرچم ډیر غړي یې له دندو ګوښه کړل، دا په داسې حال کي چې په هیواد کې د کمونستي انقلاب په وړاندې پاڅونونه پیل ؤ چې تر ټولو لوی پاڅون په ۱۳۵۷ کال د حوت په ۲۳ نیټه د هرات د خلکو پاڅون ؤ چې هلته میشت فوځي قوتونه هم له پاڅون کوونکو سره ملګری شول، دې پاڅون حکومت دومره وارخطا کړ، چې د روسي جنرال ګروموف په وینا نورمحمد ترکي په بار بار له روسانو د ملاتړ



او مداخلې غوښتنه وکړه، خو روسانو د عسکرو د استولو په ځای د الوتکو په مرسته د هرات ښار بمبمارد کړ چې په ترڅ کي د تاريخ ليکونکو په وينا (۲۴) زره هيوادوال ووژل شول او پاځون خاموش شو.

د خلق او پرچم د ډلو د داخلي اختلافاتو په ترڅ کې د ارګ د ننه د حفيظ الله امين د ترور يوه ناکامه هڅه هم وشوه،چې امين يې دې ته وهڅاوه تر څو، په ۱۳۵۸ کال نورمحمد ترکي د وخت جمهور ريس دبالښت په واسطه په قتل ورسوی او ځان په ټولو فوځي، حزبي او نورو ادارو واکمن کړي.

له يوې خوا کمونستي ډلو ترمنځ اختلافات له بل لوري د دوی د سخت جبروت په وړاندې د خلکو پاڅونونو، د ګوند غړي وهڅول چې ټول مخالفتونه په سختو کاروايیو سرکوب کړي، نو د لکونو انسانانو په وژلو، زنداني کولو او تر دې چې ژوندي خښولو يې لاس پورې کړ، دې کار د امين د حکومت تر پايه همداسې دوام وموند، تر څو پرچم ډله وتوانيده د روسانو د لويو فوځونو په ملاتړ او راتلو په ۱۳۵۸ کال د جدې په (۶) نيټه د افغانستان په عملي اشغال سره حفيظ الله امين د روسانو په لاس مړ او ببرک کارمل واک ته ورسوي.

د روسانو او کمونستانو دوستي غبرګه شوه، په ګډه يې د هيواد په لر او بر کي د اولسونو په بمبارد، ډله ايزو وژلو،او عمومي شړلو لاس پورې کړ، روسانو پوره لس کاله د کمونستانو په ملاتړ د هيواد ګوټ ګوټ په خپلو ټانګونو او الوتکو له خاورو سره خاوري، او يو نيم ميليون افغانان يې په قتل ورسول، پنځه لکه ترې پاکستان او ايران ته وتښتيدل د جګړو په لړ کې تقريبا (۵۰) زره روسي فوځيان ټپيان او ووژل شول، زرګونه تانګونه يې وسوځيدل، سلګونه الوتکې يې را نسکورې شوې، داسې حالت ته ورسيدل چې له يوې خوا په افغانستان کې د تګ راتګ لارې پرې وتړل شوي له بل

لوری په شوروي اتحاد کې د مړو تابوتونو خلک سخت وارخطا کړل اقتصاد یې له منځه ولاړ او په نړی کې یې حیثیت ته لوی تاوان ورسید.

بلاخره مجبور شول د و تلو لاره ولټوي . دا وخت په شوروي اتحاد کې میخایل ګرباچوف جمهور ریس ؤ، هغه غوښتل د لوی ناورین د مخنیوي په موخه په بیره خپل فوځونه له افغانستان څخه وباسي، ځکه ټول شوروي اتحاد د ورانیدو په پوله ولاړ ؤ نو یې تصمیم ونیو چې د حالاتو د بدلون به موخه د افغانستان په حکومت کي تغیر راولي او ځان ته و وتلو لاره برابره کړي، خپل لوړ پوړی مشاور ویکتور پترووېچ پلیچکا ته یې دنده وسپارله تر څو ببرک کارمل له دندې ګوښه او استعفاء پرې ولیکي،هغه هم استعفاء ولیکله او خپله مسکو ته ولاړ په ځای یې ډاکتر نجیب چې پخوانی د کمونستي نظام د استخباراتی شبکې (خاد) ریس ؤ جمهور ریس وټاکه او عملا د روسانو په مرسته واک ته ورسید

ډاکتر نجیب الله د روسانو د وتلو سره سم د زور لاره پریښوده او ملي مصالحې اعلان یې وکړ، ورسره یې پخواني (حزب دیموکراتیک خلق افغانستان) ګوند په (وطن) ګوند سره په داسې حال کې بدل کړ چې عملا یې هماغه د کمونستي مفکورې په اساس تشکیلات درلودل، یوه لویه جرګه یې د خپل تر نفوذ لاندې سیمو څخه راوغوښته او نوی قانون اساسي یې هم جوړ کړ، ددې تر څنګ یې د افغانستان بیرغ هم بدل کړ او د ملي فوځ د پیاوړي کولو په ځای یې د قومي کنډکونو په جوړولو پیل وکړ،زرګونه ملیشې یې په قومي کنډکونو کې تنظیم کړې، او د هیواد په لر او برکې یې بې جلبه واک ورکړ، چې بلاخره له دوه کاله حکومت وروسته د همدې ملیشو په لاس یې حکومت نسکور شو . او خپله بیا د طالبانو په دوران کې اعدام شو.



## آیا افغاني کمونستان وتوانیدل کمونیستي مفکوره پلي کړي ؟

کمونستانو د واک په لومړیو میاشتو کې د ځینو فرمانونو په صادرولو ځینې کمونیستي کړنو ته لاره هواره کړه، دوی عملا د کمونست ګوند د اصولو په اساس حکومتي نظام تأسیس کړ انقلابي شورا یې جوړه کړه چي یواځی کمونستي غړي پکښې فعال ۇ، د هیواد په ټولو مؤسیسو کې د کمونست ګوند غړي واکمن شول،او په هره موسسه کې د کمونست ګوند (حزبي) دفترونه جوړ شول چې د کمونستي افکارو د ترویج تر څنګ یې د مخالفینو څارل هم دنده وه.

په اقتصادي برخه کې یې په ډیرو ولایتونو کې د لویو ځمکه والو ځمکي په بزګرانو وویشلې، ولورونه یې (۳۰۰) افغانۍ وټاکل، سود او ګروي یې باطلې کړې، ورسره یې په محکمو کې هم تغیرات راوستل، فوځي او انقلابي محکمي یې جوړې کړې چې د انقلاب مخالفین به پکښې په ډیره آسانۍ، پرته له ټولو بشري او قانوني حقوقو محاکمه کیدل، ددې محاکمو واک یواځې د کمونست ګوند غړو سره ۇ، مدافع وکیل او مرافعي پکښې نه وې، همدې محاکمو په (۱۳۵۷-۱۳۵۸) کلونو کې تر (۵۰) زره ډیر خلک په یواځې یوه تور سره اعدام او یا ژوندي تر خاورو لاندې کړل..

دا چې ددې کودتا او ډلې په وړاندې ډیر زر د اولس عکس العملونه راپورته شول نود کمونستي پلانونو د پلي کولو په ځای یې په ملت کې د مخالفینو په سرکوبولو، او په ښارونو کې د خلکو د خوشاله ساتلو پالیسي بدله کړه، دا چې دوی له یوې خوا د قدرت په سر په خپلو کې سره اوښتي ۇ له بل لوري د هیوادوالو د لوی پاڅون سره مخ شول،ونه توانیدل خپلې اساسي موخې پلی کړي، په عوض کې یې د خپلو اصلي ځیرو په بدلولو، د شعارونو په نوي کولو په ملت کي ځان ساته، دوی د ببرک کارمل د راتګ سره سور انقلابی بیرغ هم په تورسور زرغون بدل کړ،او د لومړیو ورځو په خلاف یې چې د دین په علماؤ، او مذهبی مشرانو یې ناتار جوړ کړی ۇ،د دوی سره د تعاطف لاره غوره کړه.

له بلې خوا دوی د ګوند دننه کومه معینه فکري تګلاره هم نه درلوده، ځینې به پکښې دومره تند ؤ چې هر څه یې په یوه ورځ بدلول غوښتل او ځینې بیا پکښې لږ ارام ؤ چې همدې پالیسیو ددوی ترمنځ اختلافاتو ته لاره هواروله، همدا شان دوی د خپلو افکارو د پخولو او عملي کولو لپاره خپل افغاني لیکلي اثارچې د هیواد په سطحه لیکل شوي وي او افغانی رنګ ولري، هم نه درلود، یواځې هماغه د مارکس، لینن او ستالین لیکنې او افکار مطالعه او ژباړل . ددوی د یوه مشر څخه هم کومه داسې لیکنه چې ددوی لپاره خط مشي ترسیم کړي هم نده پاتې، تر دې چې د نورمحمد ترکي څخه چې ددوی لوی رهبر ؤ یواځې د کوندې زوی د کتاب په شان چې ادبي پنځه لري پاتي دی.

نو له همدې امله دوی مجبور ؤ هغه تصورات چې په روسیه او چین کي پلی کیدل کټ مټ په افغانستان کې هم پلي کړي، له همدې امله د ولس د سخت غبرګون او مخالفت سره مخ شول او بلاخره یې د فکري ثقافت زوال راورسید.

د سپتامبر د یوولسمې نیټې د پیښې وروسته د پخواني وطن ګوند غړو، پخوانیو خلقیانو، پرچمیانو د دیموکراسۍ څخه په ګټه اخیستنه، په نوی سیکولرستي ایډیولوژی فعالیت پیل کړ،چې په دې لړ کې یې ګڼ ګوندونه رامنځ ته کړل.

البته دا ګوندونه په ښکاره د کمونستي تصور په اړوند څه نه وایي، په اساس نامو کي یې هم ترې یادونه نه ده کړې، خو په خپل منځیو کړیو کې هماغه کمونستي ادبیات کاروي، او اوس هم یو بل ته د ملګري او رفیق نوم کاروي، له بل لوري یواځیني شی چې اوس پرې سنبال دي او له پخوا ورته پاته دی، الحادي تصورات دي چې د سیکولرم په جامه کې یې خپروي، او د ملت لپاره د نوي تصور په لړ کې د دیموکراسۍ سندرې وایی.



زه به د دې ليکنې په پای کې د هغو کمونست نظره ګوندونو نومونه ياد کړم چې د افتاب انترنيتي جريدي معرفی کړي

**۴ - د افغانستان کمونست (مائوست) ګوند:**

دا ګوند هم په افغانستان کې د ديموکراسۍ په لسيزه کې را څرګند شو،ددې ګوند غړي هم د مارکس او لينن د افکارو څخه پيروي کوي، دوی له لوړې سره د افغانستان د ديموکراتيک ګوند څخه بيل شول،

د دې ګوند د ځينو ليکوالو په اند، کله چې د خلق ديموکراتيک ګوند د خروسچوف په لارښوونه په ۱۳۴۳ کال تأسيس شو، نو قدرت ته د رسيدلو لاره يي د پارلمان لاره اختيار کړه او عملا ځينې کسان پارلمان ته داخل شول، خو ځينې کسان چې د چيني کمونست ګوند څخه متأثره ؤ د خلقيانو دا عمل يې وغنده او دا يې د کمونست ګوند د لارښوونو خلاف کار وګاڼه، ځکه چينې کمونيزم په قهري انقلاب باور درلود نه په مساليميت اميز پالماني ډول، دوی نه يواځې د خلقيانو دا کار محکوم کړ و بلکه خروسچوف (د هغه مهال د اتحادجماهير شوروي) کړنې يې هم وغندلې او هغه يې هم د کمونزم د اصلي تګلارې څخه بې لارې وګاڼه، له همدې امله د کمونستانو ترمنځ لوی درځ رامنځ ته شو چې مختلفې ډلې رامنځته شوې چې د محمودي، ياري، او باختري ډلې يې بيلګه ده دې ډلو په (۱۳۴۴) کال (سازمان جوانان مترقي افغانستان) رامنځته کړ،چې مشري يې اکرم ياري په غاړه واخيسته، ددوی په وينا په هغه مهال کې ددې ګوند موخه په افغانستان کې د يوه قهري انقلاب چې مسلحانه پروګرام يې هم درلود راوستل ؤ، دې ډلې په (۱۳۴۷) کال د (شعله جاويد) په نوم يوه نشريه راوايسته،چې له يوولسو جريدو وروسته د تندو او حکومت ضد خپرونو له امله وتړل شوه، په (۱۳۴۹) کال دا ډله د حکومت له لوري تر تعقيب لاندې شوه، ورسره پکښې انشعابونه رامنځته شول، لومړی انجنير عثمان ترې بيل، بيا په (۱۳۵۱) کال کله چې په پوهنتون کې د اخوانيانو سره لاس ګريوان شول، او سيدال سخندان ووژل شو نوی اختلافات رامنځته شول چې ځينې



نورې ډلې په یوه نوي نوم (گروه انقلابی خلقهای افغانستان) د ډاکتر فیض احمد په مشرۍ کې را ټولې شوې، چې د جوانان مترقي د ډلې په خلاف یې خپل تبلیغات پیل کړل.

په ۱۳۵۴) کال له همدې انقلای ډلې یوه بله ډله د انجنیر توریالي په مشري بیله شوه او د (سازمان تدارک و مبارزه برای ایجاد حزب کمونست) په نوم یې نوې ډله جوړه کړه چې د هغو پخوانیو په مقابل کې ودریده او د اخگر په نوم چې جریده خپروله، دا جریده وروسته د مآؤستي فکر څخه واوښته د انورخوجه د کمونستانو لاره یې تعقیب کړه .چې توریالی بیا په (۱۳۶۳) کال په کنړ کي ووژل شو.

په دوی کې نورې ډلې هم رامنځته شوې، مجید کلکاني په شمالي کې د(محفل شمالي) په نوم ډله جوړه،او صادق یاري په (۱۳۵۶) کال د (سازمان رزمنده خلقهای افغانستان) یا (سرخا) په نوم بله گروه جوړه کړه، چې دې ډلې د ثور د اوومي د کودتا په خلاف لومړی بیانیه خپره او دا کودتا یې وغندله، چې څه موده وروسته ددې ډلې یوه غړي د خلقیانو د حکومت (اگسا) ته دا ډله افشاء کړه، خلقیانو هم ددې ډلې دمشر اکرم یاري په شمول گڼ نور غړي اعدام کړل.

همدا شان مجید کلکاني هم په (۱۳۵۸) کال خاد ونیوه او ډیر زر یې اعدام کړ، د مجید له اعدام وروسته دا ډله بیا په څو برخو وویشل شوه چې مشران یې بیا خلقیانو په (۱۳۶۰) کال اعدام کړل

**۵ -(سازمان رهایی افغانستان)(الو) او (راوا ):**

دا سازمان د ډاکتر فیض محمد په نوم یوه پیاوړي او فکري شعله یي په مشرۍ جوړ شو، او د هیواد دننه او بهر یې فکري او تبلیغاتي کار پیل کړ دا ډله تر نورو په پاکستان کې ډیره پیاوړې وه، گمان کیږي چې نوموړی د کندهار اوسیدونکی ؤ او د پاکستان کوټه ښار کې یې د فعالیت مرکز جوړ



کړی ۋ، دې ډلې یوه بله څانګه د خپلي میرمني ( مینا) په لاس د (جمعیت زنان انقلابی افغانستان) (راوا) په نوم جوړه کړه، راوا په مستقل ډول خپل فعالیتونه پرمخ وړل تر دې چې په (۱۳۶۵) کال د (رهايي) مشر داکتر فیض محمد په پیښور کې (ددوي په وینا) د حزب اسلامي په لاس له څو نورو ملګر سره یې اعدام شو، او داسې ویل کیږي چې چا دا سړي حزب اسلامی ته په لاس ورکړی ۋ انجنیر خان محمد د فضل حق مجاهد ملګری ۋ چې (ګمان کیږي) دا دواړه بیا په حیات آباد کي د شعله یانو په لاس ترور شول، د نوموړي له اعدام روسته د هغه لور مینا چې په (کشور کمال ) هم مشهوره وه او د (دریا) د مجلې په اساس یې ځان ته د کشورکمار په نوم هم ګرځیده،خپل فعالیت ته د (راوا) په نوم په یوه نوي سازمان کې کار پیل کړ، هغه وتوانیده چې د ډیرو بهرنیو هیوادونو توجه ځان ته راجلب کړي، هغې هڅه وکړه د لویدیځ په خلاف له تبلیغاتو ډډه وکړي او ټوله توجه اسلام پالو، جهادیانو او خلقي کمونستانو په خلاف راوګرځوي . خو نوموړې په (۱۳۶۶) کال په کوټه کي ددې سازمان په قول دخلقیانو د خاد د سازمان او یا حزب اسلامي په لاس، خو د (دریا ) مجلې د په وینا د داخلي اختلافاتو له امله ووژل شوه، ددې ډلې رهبري هڅه وکړه تر څو په ښکاره له کمونستي مائوستي افکارو ځان ګوښه،د لویدیځ په خلاف له تندو شعارونو تیر شي او د مبارز موخه اسلام پالو او پخوانیو خلق+پرچم ډلو ته راوګرځوي، له همدې امله اوس ددوی په رسمي پاڼو او جریدو کې د مائوستي افکارو څخه څه نه لیدل کیږي، خو ددې ډلې د نشریې (پیام زن) مضامین تر ډیره د شعله یانو سره د همدردی او د هغوی سره د خواخوږي څخه لیکني خپروي، دي مجلی د شعله یانو د یوې بلې ډلې د مشر (ساما) لوی تصویر په خپله مجله کېي خپور کړ او قاتلین یې جنایت کاران وبلل، له بلې خوا د مجلې ډیر مضامین او اشعار هماغه د شعله جاوید د مشرانو دي لکه :عبدالله رستاخیز (داؤد سرمد)،سیدال سخندان،انیس اذر(بشیر بهمن) سعید سلطانپور، سیداحمد رهزاد(جولیوس واتل روزنبرګ)، اتونه کاستیلو او داسي نور.



د ۲۰۰۱ کال د دسامبر پیښه دې ډلې ته خوښنه تمامه شوه، نو د امریکا له لوري زلمي خلیل زاد او د هغې میرمن، له نومورې ډلې سره اړیکې ټینګې کړې، او دا ډله یې د خپلو موخو لپاره په غیرړ کي ونیوه، لودیځوالو، دې ډلې ته په ګڼو هیوادونو کې د فعالیت اجازه ورکړه تر څو مالي او معنوي منابع ومومي، تر دې چې د خلیل زاد د ښځې په واسطه یې مشرانو ته د پاسپورت سهولتونه هم برابر شول، دا ډله اوس هغه کمونستي شعارونه نه ورکوي په ځای یې ټوله توجه د اسلام پالو په خلاف را اړولې.

دا ډله ګڼي مالي سرچیني لري، د مهدي نیک آین یوه لیکونکي په وینا، دا پیسې د خلکو سره د مرستو، ښونځیو، کلینیکونو . لپاره راټولوي خو دا پوښتنه او حساب چاته نه ورکوی چې دا پیسې په کومو لارو په مصرف رسیږي او له چا سره دي ؟ دا ډله اوس هم په ټول هیواد کې فعالیت لري، تر دې چې په لومړۍ ملې شورا کې یې هم خپل غړي درلودل، او ویل کیږي چې ملالۍ جویا هم د همدې ډلې غړې وه.

له امریکایانو او نورو اروپایي هیوادونو سره نیژدې اړیکې لري او د هغوی له لوري یې ملاتړ کیږي . تر دې چې پنتاګون چې کومې ویدیوګانې چې ددوی څخه یې ترلاسه کړې وې کله خپرې کړې نو دې ډلې سخت احتجاج پرې وکړ.

**۶-(سازمان ازادي بخش افغانستان) (ساما):**

دا ډله د مجید کلکاني له مرګ وروسته د هغه ورور (قیوم رهبر) ته په میراث ورسیده هغه له څه مودې وروسته اروپا ته ولاړ او په اروپا کي فعالیت کاوه، د نومورې دلي فعالین په پاکستان کې هم فعال ؤ خو د فکري او مادي اختلافاتو په نتیجه کې، ددې ډلې څخه یوه بله ډله د (حزب کمونست مائوست افغانستان) په نوم جلا شوه چې (او اوس هم فعاله او د (شعله جاوید ) په نوم انترنیتي مجله خپروي)، رهبر ددې ستونزې د حل



په موخه پیښور ته ولاړ، خو هلته بیا ترور شو، او آوازه دا خپره شوه چې دا ترور هم حزب اسلامي کړیدي.

د ساما او د رهایي سازمانونه، داسې دوه خفیه سازمانونه ؤ چې د کمونستي انقلاب په ډول دوران کې په داخل او بهر کې فعال ؤ او خپل وسلوال ګروپونه یې درلول چې تل به له حزب اسلامي او جمعیت اسلامي سره په جګړو کي ښکيل ؤ.

د داکتر فیض محمد له مرګ وروسته د (رهایي) سازمان هم په وړو ډلو وویشل شو چې وروستۍډله یې په (۱۳۸۵) کال د (سازمان انقلابی افغانستان) په نوم رامنځ ته شوه.

اوس چې کومې ډلې په بهر او داخل کې د همغه پخواني (شعله جاوید) په لاره د حرکت او کار په حالت کې لاندې ډلې یادولای شو (حزب کمونست ماؤست افغانستان، تشکیلات مائوستهای افغانستان، سازمان کارګران افغانستان (م.ل.م)، جنبش انقلابی جوانان افغانستان، هسته کارګری مبارز افغانستان، سازمان رهایی افغانستان،او داسې نورې وړې ډلې چې په پټه په فعالیت بوختې دي.

**د افغانستان د ماؤستي ډلو په هکله لنډه تبصره:**

د دې ډلو تاریخي سیر ته که ځوک ځیر شي نو په ښکاره به ووینې چې دې ډلو کومه ثابته ایډیولوژي نه درلوده او نه یې کومه ثابته خط مشي درلوده، ډیری پکښې احساساتي ځوانان ؤ چې د واکمن نظام د مامورینو له لاسه یې نادودې لیدلې وې، له همدې امله به دوی زر زر تجزیه کیدل او په وړو ډلو به ویشل کیدل، همدا شان دا ډلې دې ته هم متوجه نه وې چې ددوی انقلابي افکار چې په الحادیی تصور ولاړ ؤ څه ډول د افغانستان په سنتي اسلامي ټولنه کي ومنل شي، زما په اند دوی له اسلام سره هم اشنایي نه درلوده، او اسلام ته یې هم د پخوانۍ کلیسا په سترګه کتل، نو



ځکه به تل له ولس، خلکو او حکومت سره لاس او ګریوان ؤ.اوسني شعله یان هم ددې په ځای چپ د افغانستان واقعیتونه په نظر کي ونیسي د ځینو خود خواه او افراطي اشخاصو ښکار دي چپ نه د ټولنې ترکیب ورته معلوم دی او نه د هیواد حالات درک کولای شي. او دا چپ دوی د حالاتو په بدلیدو خپل تصورات او بنې ته بدلون ورکوي، دا هم ددوی د کمزوری مفکورې ښه بیلګه ده . زما په آند دا ډلې به تل همداسې ویشلي او بې اساسه وي او تل به د نورو هیوادونو په بازارونو کې د مظلومیت چندې ټولوي ترڅو پرې خپلې خیټې ډکې کړي، او دا ملت به کله د یوه ښامار او کله د بل ښامار په خوله کې وراچوي.

## په اوسني نظام کي رسمي کمونستي بنسټه ډلې او ګوندونه:

دا لاندې ډلې عملا په حکومت کې رسمیت لري او فعالیت کوي، د آفتاب د انترنیتي ورځپاڼې څخه ما را کاپي کړې، او هغوی ورته پخواني او اوسني تمایلات لیکي، سره ددې چې د لاندې ګوندونو ځینې غړي له دې تشریح شوو اساسونو سره موافق ندي خو بیا هم زه د همدې مجلې په استناد سره لاندې جدول کې ترتیب کوم:

| شمیره | د ګوند نوم | د رهبر نوم | د ګوندپالیسي او پخواني اساس |
|---|---|---|---|
| ۱ | حزبجمهوري خواهان افغانستان | صبغت الله سنجر | سابقه ی وابستگی فکری و سیاسی به حزب کمونیستی دموکراتیک خلق (حزب وطن)، فعلآ سکولار و طرفدارغرب |
| ۲ | حزب وحدت ملی افغانستان | عبدالرشید جلیلی | سابقه ی کمونیستی و وابستگی به حزب دموکراتیک خلق افغانستان. |
| ۳ | نهضت آزادی و دموکراسی افغانستان | عبدالرقیب جاوید کوهستانی | سابقه گرایش کمونیستی و عضو سازمان خاد در زمان رژیم کمونیستی |
| ۴ | حزب سعادت مردم افغانستان | محمدزبیر | پیروز سابقه فکری کمونیستی و روابط با رژیم کمونیستی سابق |
| ۵ | حزب افغانستان | واحد محمدواصل رحیمی | سابقه گرایش به رژیم کمونیستی |
| ۶ | حزب حرکت ملی وحدت افغانستان | محمدنادر آتش | دارای سابقه گرایش کمونیستی و در حال حاضر طرفدار دموکراسی غربی |



| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷ | حزب ملی افغانستان | عبدالرشید آرین | دارای سابقه فکری کمونیستی و عضویت در حزب دموکراتیک خلق ( جناح پرچم) و ازکارمندان امنیتی رژیم کمونیستی سابق |
| ۸ | حزب کنگره ملی افغانستان | عبدالطیف پدرام | سکولارِ طرفدار غرب، و دارای سابقه همکاری با رژیم کمونیستی سایق و شورای نظار. |
| ۹ | د افغانستان دسولی غورزنگ گوند | شهنواز تنی | دارای سابقه کمونیستی و از اعضای بلند پایه حزب دموکراتیک خلق( جناح خلق) و وزیر دفاع رژیم کمونیستی در زمان دکتر نجیب |
| ۱۰ | حزب رسالت مردم افغانستان | نور اقاروئینی | گرایش سکولاریستی و سابقه گرایش کمونیستی |
| ۱۱ | حزب رفاه مردم افغانستان | میا گل وثیق | گرایش سکولاریستی و سابقه روابط با رژیم کمونیستی |
| ۱۲ | حزب تفاهم ودموکراسی افغانستان | احمد شاهین | گرایش کمونیستی و سابقه همکاری با رژیم کمونیستی |
| ۱۳ | حزب همبستگی افغانستان | عبدالخالق نعمت | گرایش فکری کمونیستی و سابقه گروهی مائوئیستی، مربوط به جریان شعله ی جاوید |
| ۱۴ | حزب آرمان مردم افغانستان | سراج الدین ظفری | گرایش سکولاریستی و سابقه گرایش کمونیستی |
| ۱۵ | حزب آزادی خواهان مردم افغانستان | فدا محمد احساس | گرایش فکری کمونیستی و سابقه گروهی مائوئیستی |
| ۱۶ | حزب آزادی افغانستان | عبدالملک | گرایش سکولاریستی و قومی ازبک و دارای سابقه همکاری با رژیم کمونیستی |
| ۱۷ | حزب رستاخیزمردم افغانستان | سید ظاهر قائید ام البلادی | گرایش سکولاریستی و کمونیستی وسابقه همکاری با رژیم کمونیستی سابق |
| ۱۸ | مجمع ملی فعالین صلح افغانستان | شمس الحق نورشمس | گرایش کمونیستی و وابسته به یکی از شاخه های حزب دموکراتیک خلق افغانستان |
| ۱۹ | حزب همبستگی ملی اقوام افغانستان | محمد ظریف ناصری | گرایش سکولاریستی، سابقه کمونیستی. |
| ۲۰ | حزب ترقی ملی افغانستان | دکتر آصف بکتاش | گرایش سکولاریستی و سابقه کمونیستی در رابطه با مائوئیستها |
| ۲۱ | حزب جنبش ملی اسلامی افغانستان | سیدنورالله (رهبر اصلیژنرالدوستم) | گرایش سکولاریستی و قومی ازبک وسابقه ی عضویت و خدمت در حزب دموکراتیک خلق و دولت کمونیستی |



| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲۲ | حزب ملی هیواد | غلام محمد | گرایش کمونیستی و سابقه عضویت در جناح خلق از حزب دموکراتیک خلق و عضویت در رژیم کمونیستی سابق |
| ۲۳ | حزب متحد ملی افغانستان | نورالحق علومی | گرایش کمونیستی و از رهبران مهم نظامی حزب دموکراتیک خلق |
| ۲۴ | حزب مردم افغانستان | احمد شاه اثر | گرایش به لیبرال دموکراسی غربی و دارای سابقه کمونیستی. |
| ۲۵ | د افغانستان دملی مبارزینوگوند | امانت ننگرهاری | دارای گرایش کمونیستی و سابقه عضویت در گروه مائوئیستی بنام حزب عدالت دهقانان، و همکاری با رژیم کمونیستی. |
| ۲۶ | حزب دموکرات افغانستان | عبدالکبیررنجبر | گرایش کمونیستی و از شخصیت های مهم حزب دموکراتیک خلق |
| ۲۷ | حزب ملی دریز | حبیب الله جانبداد | گرایش کمونیستی و از فعالین حزب دموکراتیک خلق، جناح پرچم |
| ۲۸ | حزب دموکراسی افغانستان | محمد طاووس | عرب گرایش سکولاریستی و سابقه ی فعالیت در گروه های مائوئیستی |
| ۲۹ | حزب نهضت فراگیر دموکراسی وترقی افغانستان | شیرمحمد بزگر | گرایش کمونیستی و از فعالین حزب دموکراتیک خلق. |

اخذلیکونه:


۱ http://www.bbc.com/persian/ : -ویب پاڼه

۲ https://arashbikhoda.wordpress.com/2011/06/-پیشینه اندیشه چپ در افغانستان

۳ https://www.dw.com/fa-ir/%D-مارکس و مذهب و کشمکش بی‌پایان بر سر "افیون تودها

۴ http://www.bbc.com/persian/Afghanistan-پیشینه اندیشه چپ در افغانستان بصیراحمد حسین زادهنویسنده و پژوهشگر

۵. https://fa.wikipedia=کمونیسم

۶ http://www.bbc.com/Persian-پیشینه حزب دمکراتیک خلق افغانستان

۷-حزب کمونیست (مائوئیست) افغانستان
https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%




- http://www.payam-aftab.com/fa/Afghanistanology/Parties ۸ احزاب و سازمان‌ها

النظام الشيوعي- http://www.startimes.com/?t=30867871 ۹

جریده- https://www.sholajawid.org/update/index_farsi.html۱۰ شعله جاوید،حزب کمونست مائوئست افغانستان

شعله جاوید https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%B4%D8 ۱

معرفی مختصر-http://www.rawa.org/rawa-f.htm RAWA.ORG: ۱۲ «جمعیت انقلابی زنان افغانستان»

۱۳-جمعیت انقلابی زنان افغانستان (راوا) http://database-aryana-encyclopaedia.blogspot.com/2009/01/blog-post_8181.html

جمعیت انقلابی زنان افغانستان-https://fa.wikipedia.org/wiki ۱۴

-BBC News | SOUTH ASIA | Afghan activist’s killers hanged۱۵

برخی احزاب سیاسی:- http://aftabnews.ir/ ۱۶

جریده-https://www.sholajawid.org/update/index_farsi.html ۱۷ شعله جاوید ارگان مرکزی حزب کمونست مائوست افغانستان

شعله ای " کیست ؟- https://www.rahrawan.com/aahinger/ " ۱۸


# (بلنه ـ Balana)